# دانسان سمې ایدې
# له کومه
# سرچېنه اخلي؟

مائوتسه دون

۱۳۶۳ کال مي مياشت



دانسان سمې ايدې له کومه سرچېنه اخلي؟
لیکوال: مائوتسه‌دون
ژباړونکی او ډیجټال خپرونکی: محسن خپرندویه
بریښنالیک: mohsinpubs@gmail.com
وبلاگ: http://mohsinpubs.blogspot.com
د خپروني نیټه: د ۱۴۰۱ کال د کب میاشت (۲۰۲۳ کال فبروری میاشت)




د محسن خپرندویه د یو شمیر افغان انقلابیانو له لوري جوړه شوه چې د مارکس، انګلس، لنین، ستالین، مائوتسه‌دون او نورو انقلابي او مخکښو لیکوالانو آثارو چاپ او خپرول یې د خپل کار په لومړیتوب کې نیولي دي.

# دانسان سمې ایدې له‌کومه سرچینه اخلي؟

(د ۱۹۶۳م کال د مې میاشت)

د انســان سمې ایدې له کومه ســرچینه اخلي؟ آیا له آسمانه رانازلېږي؟ نه. آیا هغه د انســان د مغزو ذاتي ځانګړتیاوې دي؟ بیا هم نه. د انســان ســمې ایدې یوازې لــه ټولنیز پراتیک څخه ســرچینه اخلي. یانې له دغو درې ډولــه ټولنیــزو پراتیکونو څخه: تولیدي مبــارزه، طبقاتي مبارزه او آزمایښتي آزموینې. د انسان ټولنیز شتونوالی د هغه د فکر ټاکونکی دی. سمې ایدې، چې د پرمخ تللې طبقې له ځانګړنې څخه دي، ماذې دا چې پرګنــو هغه زده کړې، د ټولنې او نــړۍ د بدلولو لپاره به په مادي ځواک

بدلې شــي. انســانان د خپل ټولنيز پراتيک په لړ کې په ډولاډول مبارزاتو کې برخه اخلي او له برياوو او ماتو څخه پرېمانه تجربې ترلاســه کوي. د بهرنۍ عيني نړۍ بې شــمېره پديدې د پنځګوني حواس غړو – ســترګو، غوږونــو، پــوزې، ژبې او د پوټکي - په وزله (وســيله) د انســان مغزو ته آزانګــه (انعکاس) مومــي، چې په پيل کې يوازې حســي پېژندنه په لاس راکــوي. د حســي ادراک کافي مالوماتو په راغونډېدو ســره يو غورځنګ رامنــځ ته کېږي او حســي پېژندنه په تعقلي يانې پــه ايدې بدلېږي. دا د پېژندنــې يــوه پروســه ده. دا د پېژندنې غونډې پروســې څخه لمړی پړاؤ دی، يانې د عيني مادې څخه ذهني شــعور ته، له هســتۍ څخه ايدې ته د انتقال پړاؤ دی. په دې پړاؤ کې، دا چې آيا شــعور يا ايده (په ګډه ســره تيورې، سياســتونه، نقشــې او تدبيرونه) د بهرنۍ عينــي نړۍ قوانين په سمه آزانګوي او که نه، لا نه په ډاګه کېږي او د شعور يا ايدې سموالی لا ټاکلېدلای نشــي؛ ورپسې د پېژنې د بهير دوهم پړاؤ راځي، يانې له شعور څخه مادې ته راســتنېدل، له ايدې څخه هســتې ته – دلته انســانان له لمړي پړاؤ څخه لاس ته راوړې پېژندنه په ټولنيز پراتيک کې کاروي، تر څــو ووينې، چې آيا تيورې، سياســتونه، نقشــې او تدبيرونه په وړاندوينو (پيشــبينی) برياوو باندې پای مومي او که نه. په ګرده توګه، هر هغه څه چې وړاندوينه برياوو ته ورســېږي، ســم دي او هر هغه څه، چې ماته يې پايله وي، ناســم دي؛ دا خبره په ځانګړې توګه له طبيعت ســره د بشــر د مبــارزې پــه هکله ســمون لري. پــه ټولنيزې مبارزې کې، کله داســې

پېښــېږي، چې هغه ځواکونه، چې د پرمخ تللي طبقې اســتازي دي، له ماتــې ســره مخ کېږي، خو لامل يې دا نــه دی، چې ګواکې د هغو ايدې ناسمې وې، بلکه له دې امله ده، چې د هغه ځواکونو په تناسب کې، چې يو له بل ســره په مبارزې بوختې دي، پرمخ تللي ځواکونه لا د ارتجاعي ځواکونو قدرت ته رســېدلي نه دي او لــه دې امله دی، چې لنډمهال له ماتې سره مخ کېږي؛ خو په  پای کې يوه ورځ رارسېږي، چې پرمخ تللي ځواکونه بريالي کېږي. د انسان پېژندنه په پراتيک کې د ازموينې له امله بــه غورځنګ ومومي. دا غورځنګ په ځوځله له لمړي غورځنګ څخه د لا اهميت خاوند دی. ولې چې دا دوهم غورځنګ دی، چې کولای شــي د لمــړي غورځنګ ســم والی او يا ناســم والی په ډاګه کــړي، يانې ثابت کــړي، چې آيا هغه ايدې، تيورې، سياســتونه، نقشــې او تدبيرونه، چې د بهرنــي عينې نــړی د آزانګ په بهير کې لاس ته راغلې وې، ســمې دي او کــه نــه؛ د حقيقت د ازموينې لپاره بله کومه لار شــتون نلري. له نړی څخــه د پرولتاريا د پېژنــدې په هکله دی د هغې له بدلولو څخه پرته بله کومه موخه نلري. يو سمه پېژندنه غالباْ په پرله پسې توګه له مادې څخه شــعور او وروســته له شــعور څخه مادې ته د حرکت د تکرار په بهير کې لاس ته راځي. دا دی د مارکسيستي پېژندنې تيوري، دا دی د ديالکتيکي ماترياليزم د پېژندنې تيوري.

زمونــږ د ملګــرو په منځ کې ډېري شــته دي، چــې د پېژندنې د تيوری دغــه اصل لا نشــي درکــولاي. که له دوی څخه پوښــتنه وشــي، چې د

دوی ايدې، نظرونه، سياســتونه او متودونه، نقشې او استنتاجونه او بې پايه ويناوې او ســوريزې او اوږدې ليکنې له کومه ســرچېنه اخلي، دوی اريانېږي او هغې ته ځواب موندلای نشي. هغو ته د مادې په شعور او د شعور په مادې بدلېدل هم د درک وړ نه دي، که څه هم داسې غورځنګ په ورځني ژوندانه کې په تکرار ســره تر ســترګو کېــږي. له دې کبله موږ بايد خپل ملګري د ديالکتيکي ماترياليزم د پېژندنې له تيورۍ ســره آشنا کــړو، تر څو وکولای شــي ســم فکر وکړي، په څېړنــې او مطالعې باندې ځواکمن شي، خپلې تجربې راغونډې کړي، په ستونزو بريالي شي، لږې تېروتنې وکړي او خپلې چارې په ښايســته توګه ترســره کړي، خپل ټول ځــواک په مبــارزه کې وکاروي، د لوی او ځواکمن سوسياليســتي هېواد بنسټ کېږدي او زموږ د لويې او هرورمرو انټرنيشنليستي دندې ترسره کولو لپاره د ټولې نړۍ خپل شــويو او زبېښــاک وهلو پراخو پرګنو ســره مرسته وکړي.[1]

۱ - دا اثر «په اوسني حال کې د کليوالو ستونزو په هکله د چين د کمونيست ګوند د مرکزي کميټې پرېکړې (لايحې)» يوه برخه ده. دا لايحه د ملګري مائوتسه دون تر پاملرنې لاندې ليکل شوې او دغه برخه د ملګري مائوتسه دون لخوا شخصا ليکل شوې ده.

